


د پوهنې وزارت

# پښتو

## شپږم ټولګی

## (د دري ژبو لپاره)

د چاپ کال: ۱۳۹۷ هـ.ش.

# د کتاب ځانګړتیاوې

**مضمون:** پښتو

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د پښتو برخې د درسي کتابونو مؤلفین

**اډیټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اډیټ دیپارتمنت غړي

**ټولګی:** شپږم (د دري ژبو لپاره)

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۷ هجري شمسي

**د چاپ ځای:** کابل

**چاپخونه:** بهیر مطبعه

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af



# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
کور د سولې کور د تورې
دا وطن د ټولو کور دی
د پښتون او هزاره وو
ورسره عرب، گوجر دي
براهوي دي، قزلباش دي
دا هېواد به تل ځلیږي
په سینه کې د آسیا به
نوم د حق مو دی رهبر

دا عزت د هر افغان دی
هر بچی یې قهرمان دی
د بلوڅو د ازبکو
د ترکمنو د تاجکو
پامیریان، نورستانیان
هم ایماق، هم پشه یان
لکه لمر پر شنه آسمان
لکه زړه وي جاویدان
وایو الله اکبر وایو الله اکبر

## د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښبونکي خدایﷻ شکر په ځای کوو چې موږ ته يې ژوند رابښلی او د لوست او لیک له نعمت څخه يې برخمن کړي یو او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفیﷺ درود وایو چې هغه ته د الله تعالی لومړنی پیغام "لوستل" دي.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونیز نظام، په بېلا بېلو برخو کې د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراګانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږګوني بنسټیز عناصر بلل کېږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور د بنسټیزو بدلونونو رامنځته کېدو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه ده. په همدې لاره کې په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلای نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته د دې درسي کتاب په تدریس او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد د راتلونکي ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، د زده کړې په پروسه کې د ځیرک او فعال ګډونوال او ښاغلیو ښوونکو ته په احترام او درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې يې نه ستړې کېدونکي هلې ځلې کړي، مننه کوم، او د لوی خدای له دربار څخه دوی ته په دې سپېڅلې او انسان جوړوونکې هڅه کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وګړي یې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر

دکتور محمد میرویس بلخي

# فهرست

## لومړی لوست

# حــمــد

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د پاك الله جَلَّ جَلَالُهُ ښه پېژندنه.





**پوښتنه**:

ستاسو په فکر حمد څه ته وايي؟

هـدايـت راتـه عطـا کـړې زمـا ربـه
د اميـد غنچـه مـې واکـړې زما ربـه
پـه صفـت مـې تيـزه ژبـه سـتا پـه ذکر
د بلبـل پـه شان ګويا کـړې زمـا ربـه
چـې مـې نفس وي رضا تـه نـارضايې
و هغـه کـار تـه مې شا کـړې زمـا ربـه
نفس، شيطان، حرص و هوا را سره ملـه دي
لـه جملـه وو مـې پنـاه کـړې زما ربه
يک تنهـا چـې ځم پـه لارې بـې رفيقـه
بيګـانـه لار مـې آشنا کـړې زمـا ربـه
((شمس الدين)) ديار وصـال په دعـا غواړي
کـه قبـوله دا دعـا کـړې زمـا ربـه

شمس الدین په ختټه کاکړ او د کندهار د (کلیچ آباد) د کلي اوسیدونکی و. دده د زیږیدو او مړینې نیټه نه ده معلومه. ښاغلي رښتین په تخمیني ډول دده زوکړه ۱۱۸۰ هـ .ش څخه وروسته ښودلې ده.

شمس الدین په ځوانۍ کې هند ته تللی او ډیر عمر یې هلته تېر کړی دی او په آخر عمر بېرته خپل وطن ته راستون شوی دی. له ده څخه یو دیوان راپاتې دی چې دده د ادبي مقام لوړ والی ترې ښه څرګندیږي



## فعالیتونه:

- زده کوونکي دې په وارسره د تختې مخې ته راشي او خپل ځان دې نورو ته معرفي کړي.
- څو زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي او د ژمي د رخصتیو په هکله دې خبرې وکړي.
- زده کوونکي دې د شعر بیتونه ولولي اوهغه دې معنا کړي.
- زده کوونکي دې په دوه کسیزه توګه شعر داملاء په توګه یو بل ته ووایي او ودې لیکي.
- زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته را شي (هدایت، عطا، ګویا، پناه، حرص، راستون) کلمې دې پر تختې ولیکي او هغو ته دې یوه یوه جمله جوړه کړي.



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په دې اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکي:

الله ﷻ پرته له انسانانو څخه نور کوم شیان پیدا کړي دي؟

## دویم لوست

# حضرت رسول اکرم ﷺ او اعرابي

**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل او د حضرت محمد ﷺ د لوړو لاربښوونو (ارشاداتو) په هکله پوهېدل.





**پوښتنه:**

ستاسو په فکر دیني ارشادات څه معنا او مفهوم لري؟

**له انس بن مالک رضي الله عنه څخه روایت دی چې یوه ورځ حضرت رسول اکرم ﷺ په مسجد کې ناست و. یو اعرابي راغی، سلام او احترام یې وکړ. حضرت محمد ﷺ د سلام تر ځواب ویلو وروسته وفرمایل: ((له کومه ځایه راغلی یې؟)) اعرابي وویل: ((له ډېر لرې ځایه او له تاسو څخه څو پوښتنې لرم. حضرت محمد ﷺ وفرمایل: (( ووایه چې ځواب یې درکړم.)) اعرابي وویل غواړم: د الله جل جلاله په رحمت کې و اوسم، حضرت محمد ﷺ وفرمایل: ((د الله جل جلاله له مخلوق سره نیکي کوه.)) زما په عملنامې کې خیر او نیکي وي نه ګناه. حضرت محمد ﷺ وفرمایل: ((له مور او پلار سره نیکي کوه.)) د دوزخ په اور کې ونه سوزم. حضرت محمد ﷺ وفرمایل: ((خپلې سترګې او خپله ژبه وساته.))**



## فعالیتونه:

- زده کوونکي دې دوه دوه تنه په وارسره متن ولولي او مشوره دې پرې وکړي.
- زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي او د متن لغتونه دې په جملو کې وکاروي.
- زده کوونکي دې دوه دوه تنه په خپلو منځو کې متن یو بل ته املا ووايي.
- زده کوونکي دې څو تنه په وارسره د ټولګي مخې ته راشي او د حضرت محمد ﷺ له ویناوو څخه يې چې څه اوریدلي دي، نورو ته ووايي.
- زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي او د لاندینیو کلمو جمعې دې پر تختې ولیکي.
(ورځ، مسجد، ځواب، زه، اور، ژبه)
- دوه دوه تنه زده کوونکي دې لاندې خبرې اترې سرته ورسوي.

مینه: پروین جانې السلام علیکم.
پروین: وعلیکم السلام، مینې خورې ښنګه يې؟
مینه: ښه یم، ته ښنګه يې؟
پروین: زه هم ښه یم، مننه.
مینه: پروین جانې! ته هره ورځ خپل لوستونه تکرار وې؟
پروین: هو حتماً يې تکراروم، که تکرار نه شي بیا هیرېږي.
مینه: ته له مور سره په کارونو کې مرسته کوې؟
پروین: زه مې له مور او خور سره په کارونو کې تل مرسته کوم.
که مرسته ونه کړم نو د زیاتو کارونو له امله به مو مورجانه ناروغه شي.
مینه: ډیر ښه، د کور په کارونو کې مرسته کول ډیر ښه کار دی.
زه هم په کارونو کې له مور جانې سره مرسته کوم.

| لغت | معنا | لغت | معنا |
| --- | --- | --- | --- |
| ښېګڼې | خوبې ها | غوره | بهتر |
| اور | آتش | وساته | نګهدار |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په دې اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکي:
(موږ له خپل مور او پلار سره ښنګه مرسته کولای شو؟)

# پوهنه

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل، د پوهې په معنا او ارزښت پوهېدل او د پوهې د ترلاسه کولو د روحیې پیاوړتیا.






**پوښتنې**:

- تاسو پوهیږئ چې پوهنه څه ته وایي؟
- ستاسو په فکر موږ څنګه کولای شو چې د پوهې خاوندان شو؟

**علم د پوهې او پېژندنې په معنا دی. پوهنه هغه رڼا ده چې د انسان زړه او دماغ روښانه کوي. انسان له بدو کارونو څخه ژغوري او خپلې موخې ته یې د رسېدو لارې چارې برابروي. له بلې خوا ناپوهي دا سې تیاره ده چې انسان له ډار، خطر او خوارۍ سره مخامخ کوي.**

**الله ﷻ د پوه او ناپوه ترمنځ د توپیر په هکله فرمایي:**

**((آیا هغه کسان چې پوهیږي، له هغو کسانو سره چې نه پوهیږي، برابر دي؟))**

**هېڅکله! پوهه او ناپوهي، لکه چې رڼا او تیاره سره برابر نه دي. نو همدا شان انسان د علم او پوهې په وسیله لومړی خپل ځان او بیا خپل خالق ﷻ پېژني، په کار ده چې له علم سره عمل هم ملګــری وي، ځکه چې عمل د علم مېوه ګڼل کېږي.**



## فعالیتونه:

- زده کوونکي دې متن له خپل ځان سره ولولي او د هغه مطلب دې په ساده کلمو کې ووايي.
- زده کوونکي دې لاندې لغتونه تر معنا کولو وروسته په جملو کې وکاروي او په کتابچو کې دې وليکي. (پوهه، موخه، پوهنه، ناپوهي، ژغورل)
- زده کوونکي دې له متن څخه متضادې کلمې پيدا او په خپلو کتابچو کې دې وليکي.

مثال: رڼا او تياره

- زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي په دې اړه دې چې أيا پوه او ناپوه سره برابر دي؟ نورو ته څرګندونې وکړي.
- زده کوونکي دې په وارسره څو پښتو کلمې ووايي چې د ( ټ، څ، ښ، ږ، او ڼ) توري پکې راغلي وي.
- دوه، دوه زده کوونکي دې لاندې مرکه د ټولګي په مخ کې ترسره کړي:

فرهاد: رشاده! السلام عليکم

رشاد: وعليکم السلام څنګه يې فرهاد جانه!

فرهاد: ښه يم وروره، ته هم ښه يې؟

رشاد: زه هم ښه يم، سلامت اوسې.

فرهاد: رشاد جانه! ښوونځي ته راتلل او زده کړه دې خوښيږي؟

رشاد: هو – زده کړه د ژوند څراغ دی.

فرهاد: زما هم خوښيږي خو رياضي مضمون مې ډير خوښيږي.

رشاد:فرهاد جانه! ته زيار باسې او کوښښ کوې. ستا زيات وخت په لوبو نه تيريږي او درسونو ته دې وخت ورکړی.

څوک چې زيار باسي، خامخا به درسونه زده کولای شي.

فرهاد: ته رښتيا وايې، زه بايد د درس وخت په لوبو تېر نه کړم.

| لغت | معنا | لغت | معنا |
|---|---|---|---|
| پوهنه | علم | ناپوهي | ناداني |
| روښانه | روشن | موخه | هدف |
| ژغورل | نجات دادن | | |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د پوه او ناپوه د توپير په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې وليکي.

# کتاب

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د کتاب په ارزښت او منځته راتلو پوهېدل.





**پوښتنه**:

تاسو څه فکر کوئ چې پخوا زمانو کې به هم کتاب موجود و؟

**په پخوا زمانوکې کتاب نه و. خلکو به کیسې په یاد زده کولې. دا کیسې پیړۍ- پیړۍ نورو نسلونو ته رسېدلې دي. څرنګه چې دا کیسې به یې ټولې په یاد نه پاتې کېدې، نو دوی په دې فکر کې شول چې د کیسو د ساتلو لپاره په لرګیو کې ځینې نښې نښانې وکړي. مصریانو لږ و ډېر (۵۰۰۰) کاله پخوا د پاپیروس د بوټي له پاڼو څخه یو ډول کاغذ جوړ کړ، کله چې وپوهېدل هغه له منځه ځي، نو د هغه پر ځای یې د لیکلو لپاره د ژوو پوستکي غوره کړل. د زرګونو کلونو وروسته بیا په چین کې د اوسني کاغذ ډېر ابتدایي شکل منځ ته راغی. وروسته په جرمني کې د چاپ ماشین جوړ او د کتاب د منځته راتلو لپاره سمه لاره پرانیستل شوه.**



## فعالیتونه:

یادونه: ( پاپیروس د اوقیانوس د سمندر په غاړه د پلنو پاڼو درلودونکی بوټي و).

- زده کوونکي دې متن ولولي او دهغه په هکله دې خبرې وکړي.
- زده کوونکي دې لاندې لغتونه په جملو کې وکاروي

پیړۍ، غوره، نښې، غوښتنې

- زده کوونکي دې په وارسره د تختې مخې ته راشي او په دې اړه دې خبرې وکړي چې کتاب څنګه منځته راغلی؟
- زده کوونکي دې په وارسره د ټولګي مخې ته راشي هر یو دې خپل نوم، د پلار نوم، د ښوونځي او ټولګي نوم واخلي او ودې وایي چې زه په راتلونکي کې غواړم ....... شم.
- دوه، دوه زده کوونکي دې لاندې محاوره ترسره کړي:

توریپیکۍ: هوسۍ خورې! ستړې مه شې!

هوسۍ: توریپیکۍ خورې په خیر اوسې.

توریپیکۍ: له ښوونځي څخه په خیر راغلې؟

هوسۍ: جوړه اوسې خورې! مننه.

توریپیکۍ: تا خپل ټول کتابونه وپوښل؟

هوسۍ: څو کتابونه مې وپوښل، خو څینې یې پاتې دي.

توریپیکۍ: زه هم غواړم کتابونه مې پوښ ًکړم، ته راسره مرسته کوې؟

هوسۍ: هو، ولې نه. زه به در سره حتماً مرسته وکړم.

خو لومړۍ باید پلاستیک او ډبل کاغذ پیدا کړو.

توریپیکۍ: پلار جان وویل: زه درته پلاستیک راوړم.

هوسۍ: ډېر ښه دا کار به په ګډه سرته ورسوو.

| لغت | معنا | لغت | معنا |
|---|---|---|---|
| پیړۍ | قرن | ژوي | حیوانات |
| غوره | بهتر | پرانیستل | بازکردن |
| نښې | نشانه ها | بوټي | بته ها |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې ددې موضوع په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکي:

مصریانو د لیکلو لپاره ولې د پاپیروس په ځای د ژوو پوستکي غوره کړل؟

## پنځم لوست

# ښوونکی

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د ښوونکي د مقام په ارزښت پوهېدل او د دوی د درناوي کولو د ذهنيت پياوړتيا.





**پوښتنه**:

ستاسو په فکر ولې ښوونکی پر مور د مور او پلار په شان حق لري؟

**ښوونکی د هغې مهمې دندې لرونکی دی چې مور ته لیک او لوست را زده کوي. ښوونکی مور د علم او پوهې د لاس ته راوړلو لپاره روزي چې د هغو په وسیله نېکمرغه او سوکاله ژوند ولرو، نو ځکه ښوونکی د مور او پلار په شان پر مور حق لري.**

**باید د ښوونکي قدر او درناوی وکړو او په لارښوونو یې عمل کول ضروري خبره ده. عمل د علم مېوه ګڼل کېږي، وایي: ((بې عمله عالم د هغې شنډې ونې په څېر دی چې مېوه نه لري.))**



**فعاليتونه**:

- زده کوونکي دې د يو بل په مرسته د متن جملې ولولي؟
- زده کوونکي دې د لاندې کلمو هم معنا کلمې له چوکاټ څخه وټاکي او بيا دې د کلمو تر

ځنګه په خپلو کتابچو کې ولیکي.

| | |
|---|---|
| سوکاله:_________ | احترام |
| درناوی:_________ | آرامه |
| ښوونکی:_________ | استاد |

- زده کوونکي دې د لوست کلمې او جملې يو بل ته د املا په توګه ووايي.
- دوه تنه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او متن کې دې درې توريزې او څلور توريزې کلمې پيدا او پرتختې دې وليکي.
- دوه دوه زده کوونکي دې په وار د ټولګي مخې ته راشي او د ځان له معرفۍ کولو څخه وروسته دې د ښوونکي د مقام په اړه خبرې وکړي.
- دوه، دوه زده کوونکي دې دا لاندې خبرې اترې د ټولګي په مخ کې ترسره کړي:

ولوله: تهمينې خورې السلام عليکم

تهمينه: ولولې خورې وعليکم السلام.

ولوله: ځنګه يې تهمينې جانې، صحت دې ښه دی؟

تهمينه: شکر ښه يمه، ډېره مننه.

ولوله: تهمينې جانې! دا ښکلي ګلان دې د څه لپاره راوړي دي؟

تهمينه: دا ګلان مې د کور له باغچې څخه خپلې ښوونکې ته راوړې دي.

ولوله: ښوونکې پر تا ډېر ګران دي؟

تهمينه: هو! ښوونکی هر چا ته د ګرانښت وړ ده.

زما پلار وايي: موږ د ښوونکو له زيار ايستلو څخه د پوهې خاوندان کيږو.

نو ځکه پر موږ د مور او پلار په شان حق لري.

ولوله: ستا پلار جان ډېره ښه خبره کوي.

موږ بايد د ښوونکو قدر او درناوی وکړو.

| لغت | معنا | لغت | معنا |
|---|---|---|---|
| روزل | تربيه کردن | شنډه | بې ثمر |
| نېکمرغه | نيکبخت | درناوی | احترام |
| سوکاله | آرام و آسوده | | |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په دې اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې وليکي:

((موږ ولې د مور او پلار په شان د ښوونکو درناوی کوو؟))

شپږم لوست

# ملي یووالی

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل، د یووالي په معنا او ارزښت پوهېدل او په دوی کې د یووالي د روحیې پیاوړتیا.





**پوښتنه**:

- آیا تاسو د یووالي په معنا او مطلب پوهېږئ؟
- تاسې پوهېږئ چې یووالی یوه ملت ته څه ګټې لري؟

**یووالی د ژوند کامیابي او نیکمرغي ده. یووالی د ملتونو د ترقۍ وسیله ده. یووالی د بې اتفاقۍ ضد دی او بې اتفاقي انسانان له بد مرغۍ او مرګ سره مخامخ کوي.**

**لکه باغ یو مملکت وګڼه وروره**
**په کې هر قسم ګلونه بوټي ګوره!**
**ونې ډېرې خو باغ یو دی که پوهېږې!**
**که کوي بل رنګه فکر ډېر غولېږې**
**د وه سکه وروڼه لري بېل بېل نومونه**
**بېل رنګونه بېل غږونه بېل خویونه**
**مګر دواړه او سېدونکي د یو کور دي**
**د یوې سترګې په کور کې سپین او تور دي**

((**اُلفت**))



### فعالیتونه:

- زده کوونکي دې په وارسره متن ولولي او د هغه په مطلب دې خبرې وکړي.
- زده کوونکي دې په وارسره له ښوونکي څخه وروسته متن پر لوړ غږ ولولي.
- زده کوونکي دې لاندینۍ کلمې په جملو کې وکار وي او په خپلو کتابچو کې دې ولیکي.
(وګڼه، سکه، بېل، اوسېدونکي، ورونه)
- دوه دوه تنه زده کوونکي دې دتختې مخې ته راشي، د شعر بیتونه دې یوبل ته املا ووایي.
- زده کوونکي دې په خپلو ډلو کې په دې اړه چې په ولسونو کې څنګه یووالی راوستلای شو؟
مشوره وکړي، بیا دې له هرې ډلې څخه یو تن خپله لیکل شوې پاڼه نورو ته ولولي.
- دوه، دوه تنه زده کوونکي دې لاندې مرکه ترسره کړي!

حمید: متین وروره السلام علیکم

متین: وعلیکم السلام حمیدجانه ستړی مه شې.

حمید: سلامت اوسې

متین: ان شاالله خیریت به وي، ناوخته را ورسیدې.

حمید: له پلار سره مې بر کلي ته تللی وم.

متین: بر کلي کې مو څه کول؟ حمید جانه!

حمید: هلته د مشرانو غونډه وه. په اتفاق او یووالي یې خبرې کولې.

متین: حمید جانه یووالی څه ته وایي؟

حمید: متین جانه! یووالی د خلکو یو لاس کیدلو او اتحاد ته وایي.
چې د خپل وطن د آبادۍ لپاره په ګډه فکر او کار وکړي.

متین: ډېر ښه، دا شان کارونه به هرومرو ښه نتیجه ورکوي.

| لغت | معنا | لغت | معنا |
|---|---|---|---|
| بېل | جدا | وګڼه | قبول کن، بدان |
| یووالی | اتحاد | ومنه | قبول کن |



### کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په دې هکله ښه فکر وکړي بیا دې څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکي:
(ولسونه ولې یووالي ته ډېره اړتیا لري؟)

# اووم لوست

# مور او پلار

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل، د مور او پلار په حقونو پوهېدل او په شاگردانو کې د مور او پلار د درناوي کولو د روحیې پیاوړتیا.





**پوښتنه**:

ستاسو په فکر مور او پلار پر موږ کوم حقونه لري؟

**د مور او پلار درناوی او له هغوی سره نیکي کول د انسانیت او مسلمانۍ له لوړو اخلاقو څخه دي. الله ﷻ فرمایلي دي: «تاسو د مور او پلار په مخکې (اُف) هم مه وایئ چې زړه یې له تاسو څخه ناراضه نه شي.»**

**نو موږ باید له هغو ټولو عملونو څخه ډډه وکړو چې د دوی د خپگان سبب کیږي.**

**همدا رنگه رسول الله ﷺ د مور او پلار په اړه داسې فرمايي:**

**«د الله ﷻ رضا د مور او پلار په رضا کې او د الله ﷻ نا رضایتي د مور او پلار په نا رضایتۍ کې ده.» نو موږ ټولو ته لازمه ده چې له خپلې مور او پلار سره په ډېرې نرمۍ او ادب خبرې وکړو، احترام یې وساتو، په رښتیني یې خدمت وکړو او تل یې دعا واخلو چې د دواړو جهانو نیکمرغي او کامیابي مو په برخه شي.**



## فعالیتونه:

- زده کوونکي دې دوه دوه تنه په خپلو منځو کې متن ولولي او په دې اړه دې خبرې وکړي.
- زده کوونکي دې په خپلو ګروپونو کې له یو بل سره د مور او پلار د حقونو په هکله خبرې وکړي او بیا دې له هر ګروپ څخه یو تن د ټولګي مخې ته راشي اوخپل معلومات دې وړاندې کړي.
- زده کوونکي دې په چوکاټ کې لیکل شوې کلمې په خپلو کتابچو کې هیجا کړي.

| نې + کې = نېکی |
|---|
| پلار |
| درناوی |
| ازار |
| مرسته |

څو زده کوونکي دې په وارسره د تختې مخې ته راشي او له متن څخه دې د جمعې کلمې پیدا او بیا دې پرتختې ولیکي.

- څو تنه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي په دې اړه دې خبرې وکړي چې: (تاسې ولې د مور او پلار پر مخکې (اف) هم مه وایئ) یوه یوه جمله دې د تختې پرمخ ولیکي.
- دوه، دوه تنه زده کوونکي دې لاندې خبرې اترې ترسره کړي:

فرشته: مدینې خورې! السلام علیکم

مدینه: وعلیکم السلام فرشتې خورې، ښوونځي ته په خیر راغلې؟

فرشته: په خیر اوسې، ډېره مننه.

مدینه: د ښوونکې له راتلو څخه مخکې زه یوه پوښتنه لرم.

فرشته: پوښتنه دې وکړه.

مدینه: پرون ښوونکې وویل: له مور او پلار سره نیکي وکړئ!

موږ څنګه له مور او پلار سره نیکي کولای شو؟

فرشته: ښوونکې وویل: د مور او پلار خدمت او احترام وکړئ!

له هغوی سره په ډېر ادب او نرمۍ خبرې وکړئ!

مدینه: ډېره مننه، ښه شو چې وپوهیدم او دغو ټکو ته مې پام شو.

فرشته: مدینې خورې! په هغو ښو کارونو چې مور او پلار را څخه خوشحالیږي، باید سرته یې ورسوو.

| لغت | معنا | لغت | معنا |
|---|---|---|---|
| ډډه | کناره گیری | خپګان | آزرده گی |
| درناوی | احترام | رښتیني | راستین |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په دې اړه چې: (د خدای(ج) رضا د مور او پلار په رضا کې ده) څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# اتم لوست

## د مطالعې ګټې

**موخه**: د متن سم لوستل، ليکل، د مطالعې په ارزښت پوهيدل او په دوی کې د مطالعې د روحيې پياوړتيا.





**پوښتنه**:

څه فکر کوئ چې مطالعه څه ګټې لري؟

**کتاب د انسان ښه دوست او ملګری دی. زموږ پوهه زياتوي او له پوهانو سره مو آشنا کوي.**

**د هغوی له فکر او نظر څخه مو خبروي. د تېرو زمانو د يادونو له پندونو ډکې کيسې راته کوي او په دې راز مو پوهوي چې څرنګه يې د خپل ژوند سرمشق وګرځوو.**

**د انساني ژوند په ټولو چارو او مسووليتونو مو پوهوي، د نيمګرتيا او هو ساينې لارې راښيي او هغو ته د رسېدو لپاره خپلې ښې لارښوونې له موږ څخه نه سپموي.**

**موږ ته پکار دي چې د مطالعې لپاره غوره، ګټور او علمي کتابونه وټاکو، د داسې کتابونو په مطالعې سره د خپل ذهن او دماغ ښه روزنه او پالنه وکړو.**

**همدارنګه د کتابونو د ارزښت او ګټو په پوهېدو سره بايد د هغو ساتنې ته هم پوره پاملرنه وشي.**



## فعالیتونه:

- زده کوونکي دې په وارسره متن ولولي او د هغه په مطلب دې خبرې وکړي.
- زده کوونکي دې لاندې لغتونه په جملو کې وکاروي او په خپلو کتابچو کې دې ولیکي.
ګټور- ملګرتیا- ستر - پاملرنه
- یو یو زده کوونکی دې د تختې مخې ته راشي او په دې اړه دې خبرې وکړي: (موږ څنګه کولای شو د مطالعې په وسیله د پوهې خاوندان شو.)
- زده کوونکي دې دوه دوه تنه د تختې مخې ته راشي او د متن یوه یوه جمله دې یو بل ته املا ووایي او پرتختې دې ولیکي.
- زده کوونکي دې په وارسره د تختې مخې ته راشي او د لاندینیو جمعو کلمو مفرد شکل دې ولیکي:(کتابونه، ملګري، انسانان، چارې، لاربښوونې، کیسې، تختې، کتابچې، قلمونه، ښوونکي)
- دوه، دوه زده کوونکي دې لاندې مرکه ترسره کړي:

رشاد: میلاده وروره السلام علیکم
میلاد: رشاد جانه وعلیکم السلام په خیر راغلې؟
رشاد: میلاد جانه! پرون زموږ د کور له مخې تیر شوې چیرې تلې؟
میلاد: له ورور سره مې بازار ته تلم یو کتاب مې په کار و.
رشاد:کوم کتاب دې په کار و؟
میلاد: د مطالعې لپاره مې یو ښه کتاب په کار و.
رشاد: میلاد جانه! کتاب دې بیا پیدا کړ؟
میلاد: هو یو ښه کتاب مې ورور راته واخیست.
رشاد: میلاد جانه!موږ په کور کې ډېر کتابونه لرو. زه به مې پلار ته ووایم او کوم کتاب دې چې په کار وي، تاته به یې امانت راوړم.
میلاد: رشاد جانه ډیره مننه، دا خو ډیره ښه خبره ده.

| لغت | معنا | لغت | معنا |
|---|---|---|---|
| ملګری | دوست و رفیق | باوري | قابل اعتماد |
| هوساینه | آرامی | ملګرتیا | همراهی و دوستی |
| ستر | بزرګ | نه سپموي | دریغ نمی کند |
| ګټور | مفید | چاری | کارها |
| غوره | انتخاب شده | پاملرنه | توجه |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې ددې مطلب په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکي: موږ د مطالعې په واسطه د ژوند کومو هدفونو ته رسیدلای شو.

نهم لوست

# رښتيا ويل

**موخه**: د متن سم لوستل، ليكل، د رښتيا ويلو په ارزښت او ګټو پوهېدل او په دوی كې د رښتيا ويلو د روحيې پياوړتيا.



**پوښتنه**:

ستاسو په فكر رښتيا ويل څه ارزښت او ګټې لري؟

**د انسانانو عزت او درناوی د دوی په ښو اخلاقو او لوړو كړو وړو پورې تړلي دي. له دغو ښو اخلاقو او صفاتو څخه يو هم رښتيا ويل دي چې د انسان اعتبار او حيثيت ساتي. كه چېرې هر سړی د خپل ژوند په ټولو چارو كې رښتنی وي او دغه صفت خپل خوی او عادت وګرځوی، نو هېڅكله به د نورو له اعتبار او نظر څخه ونه لوېږي. ډېره عامه او غوره خبره ده چې وايي:**

**هر څه چې خام وي پخېږي، خو انسان كه خام شي بيا نه پخېږي. دلته د انسان له خامۍ څخه مطلب دروغ ويل او په دروغو مشهورېدل دي.**

**عالمانو په دې برخه كې څه ښه ويلي دي:**

**د وجود هر غړی پر موږ حق لري، د ژبې حق پر موږ دادی چې په درواغو او بدو خبرو يې عادت نه كړو.**

**نو لازمه ده چې د ژوند په ټولو لارو چاوروكې رښتيا ووايو او رښتينی عمل وكړو.**



**فعاليتونه**:

- زده كوونكي دې په وارسره د تختې مخې ته راشي او متن دې په لوړ آواز ولولي.
- زده كوونكي دې لاندې لغتونه معنا او په جملو كې دې وكاروي او په خپلو كتابچو كې دې وليكي.

رښتیا، چلند، رښتنی

- که چیرې زده کوونکو د رښتیا یا دروغو په هکله که کومه کیسه اورېدلې وي هغه دې نورو ته ووایي.

- زده کوونکي دې په وار سره یو یو تن د تختې مخې ته راشي او په دې اړه دې خبرې وکړي: (مور ځنګه کولای شو چې په خلکو کې خپل اعتبار او حیثیت وساتو)

- زده کوونکي دې په وارسره د ټولګي مخې ته راشي، د ځان له معرفي کولو وروسته دې د رښتیا ویلو د ګټو او درواغو ویلو د زیان په اړه خبرې وکړي.

- زده کوونکي دې په وارسره د تختې مخې ته راشي او له متن څخه دې دوه توریزې او درې توریزې کلمې پیدا او بیا دې پرتختې ولیکي.

- دوه، دوه تنه زده کوونکي دې دا محاوره ترسره کړي:

مدینه: فرزانې السلام علیکم ورحمته الله

فرزانه: مدینې خورې وعلیکم السلام و رحمته الله

مدینه: څنګه یې خورې ان شاالله ښه یې؟

فرزانه: ډیره مننه ته هم ان شاالله ښه یې؟

مدینه: فرزانه جانې! نن به ښوونکې رښتیا ویل درس را کوي.

رښتیا ویل مې ډېر خوښ دي، زه غواړم چې تل رښتیا ووایم.

فرزانه: هو خورې! رښتیا ویل د انسان لوی صفت دی.

په رښتیا ویلو الله جل جلاله خوشحالیږي. رښتیا ویوونکی هر چاته عزت او قدر لري.

مدینه: زما مور هم ماته تل وایي: چې هر وخت رښتیا ووایه او هېڅکله دروغ مه وایه.

فرزانه: ستا مور ډیره ښه خبره کوي. باید ټول رښتیا ووایو او د دروغو له شرمنده ګۍ څخه ځان وساتو!

| لغت | معنا | لغت | معنا |
|---|---|---|---|
| رښتیا | راستي | رښتنی | صادق |
| لوړ | عالی | چلند | سلوك و روش |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په دې هکله څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکي: (مور ځنګه کولای شو چې رښتني واوسو او رښتیا خپل عادت وګرځو.)

# کلمه

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل، د کلمې په معنا او مفهوم پوهېدل او د هغو سمه کارونه.






**پوښتنه**:

- آیا تاسو د کلمې نوم اورېدلی او پوهېږئ چې کلمه څه معنا لري؟

**کلمـــه**:

**هغه کوچنی توکی دی چې ځینې یې په خپله معنا لري او ځینې یې په یوازې توګه معنا نه ورکوي، خو د جملو په جوړښت کې اساسي رول لري.**

**کلمې د معنا له مخې په دوو برخو ویشل شوې: خپلواکې او ناخپلواکې کلمې.**

**خپلـــواکې کلمې**:

**هغه کلمې دي چې په خپله معنا ولري، لکه: احمد، زه، ښه، لایق، راغی او نور...**

**ناخپلـــواکې کلمې**:

**هغه توري دي چې په یوازې توګه معنا نه لري، خو کله چې له خپلواکو کلمو سره یو ځای شي د کلمو او جملو معنا بشپړوي.**

**لکه : و، به، له، د، نه، سره، څخه، ځینې او نور....**



**فعالیتونه**:

- زده کوونکي دې په وارسره د تختې مخې ته راشي، متن دې ولولي او د هغه په هکله دې خبرې وکړي.

- زده کوونکي دې د لاندې جملو تش ځایونه بشپړ او په کتابچو کې دې ولیکي.
- کلمه هغه کوچنی توکی دی چې ..............................
- کلمه په دوو برخو ویشل شوې چې ..............................
- خپلواکې کلمې هغه دي چې ..............................
- نا خپلواکې کلمې هغه دي چې ..............................
- یو یو زده کوونکی دې د تختې مخې ته راشي له خپل فکر څخه دې یوه جمله ووایي او په هغې کې دې خپلواکې او ناخپلواکې کلمې پیدا او په تختې دې ولیکي.
- زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي د متن لغتونه دې معنا او بیا دې په جملو کې وکاروي.
- دوه، دوه تنه زده کوونکي دې لاندې خبرې اترې سرته ورسوي:

ملالۍ: زرغونې جانې السلام علیکم

زرغونه: وعلیکم السلام، ستړې مه شې ملالۍ جانې

ملالۍ: په خیر اوسې

زرغونه: ملالۍ جانې څنګه یې؟

ملالۍ: شکر ښه یمه، مننه، ته څنګه یې؟

زرغونه: زه هم ښه یم، ډېره مننه.

ملالۍ: زرغونې جانې! خپله کورنۍ دنده دې سرته رسولې ده؟

زرغونه: هو، زه له کورنۍ دندې سره ډېره مینه لرم.

ملالۍ: ډېر ښه، ما هم خپله کورنۍ دنده لیکلې ده.

زرغونه: ملالۍ جانې راځه چې ټولګي ته لاړې شو.

ملالۍ: راځه، نورې ټولګیوالې هم راغلې دي.

| لغت | معنا | لغت | معنا |
|---|---|---|---|
| خپلواک | مستقل | توري | حروف |
| ناخپلواک | نامستقل | برخه | حصه |
| بشپړ | پوره | جوړښت | ساختمان |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې له خپل فکر څخه جملې په خپلو کتابچو کې ولیکي او په هغو کې دې خپلواکې او ناخپلواکې کلمې پیدا کړي.

# ميوې او سابه

**موخه**: د متن سم لوستل، ليکل د مېوو او سبو په گټو او ارزښت پوهيدل.







**پوښتنه**:

ستاسو په فکر ميوې او سابه زموږ د وجود لپاره څه غذايي ارزښت لري؟

**ميوې او سابه زموږ د ورځنيو خوړو ډيره مهمه برخه ده چې زموږ له روغتيا او سلامتۍ سره نژدې اړيکې لري.**

**په ميوو او سبو کې ډېر ويټامينونه، مالگې او نور گټور مواد شته چې د روغتيا لپاره ډېر اړين او گټور دي. د تازه او پاکو ميوو او سبو خوړل د بدن د وزن د زياتوالی مخنيوی کوي.**

**ميوې او سابه په بيلابيلو رنگونو کې پيدا کيږي چې هر يو يې ځانته روغتيايي ارزښت لري. د ځينو ميوو د ارزښت په هکله د مثال په توگه ويلای شو که هره ورځ يوه پاکه مينځل شوې مڼه له پوستکي سره وخوړل شي، انسان د سرطان له ناروغيو څخه ژغوري.**



**فعاليتونه**:

- زده کوونکي د ې په وارسره متن ولولي او په مطلب دې خبرې وکړي.
- زده کوونکي دې د ټولگي په مخ کې د سبو او ميوو د گټو په هکله خبرې وکړي.

- زده کوونکي دې لاندې لغتونه په جملو کې وکاروي. اړیکې – اړین – مخنیوی – سابه – خواړه
- زده کوونکي دې د میوو او سبو د ارزښت په هکله خبرې وکړي او یو مثال دې ووايي.
- زده کوونکي دې له یو بل څخه پوښتنې وکړي چې په میوو او سبو کې کوم مواد موجود دي؟
- زده کوونکي دې د لاندې کلمو مترادفې کلمې ولیکي. (زیاتوالی، ډېر، ګټور، روغتیا)
- دوه، دوه تنه زده کوونکي دې دا لاندې خبرې اترې د ټولګي په مخ کې تکرار کړي:

حسینه: پلوشې خورې! السلام علیکم ورحمته الله
پلوشه: حسینې جانې! وعلیکم سلام ورحمته الله
حسینه: ته او ستا کورنۍ ښه ده؟
پلوشه: مننه تاسې څنګه یاست؟
حسینه: سلامتي مو غواړم.
پلوشه: د نن ورځې لوست ته دې (میوې او سابه) تیاری نیولی دی؟
حسینه: هو ما په کور کې څو واره ولوست.
پلوشه: حسینه جانې! ستا سابه او میوې خوښیږي؟
حسینه: زما میوې ډیرې خوښیږي.
پلوشه: سابه دې نه خوښیږي؟
حسینه: نه، سابه مې هم خوښیږي.
پلوشه: حسینه جانې میوې او سابه ډیر ګټور خواړه دي. زموږ وجود ورته ډېره اړتیا لري.
په سبو او مېوو کې ډېر ویټامینونه او نور ګټور مواد شته.
حسینه: موږ میوې او سابه ښه پاک مینځو.
پلوشه: موږ هم مېوې او سابه ښه پاک مینځو.

| لغت | معنا | لغت | معنا |
|---|---|---|---|
| سابه | سبزیجات | مالګې | نمکیات |
| ژغوري | نجات می دهد | خواړه | غذا |
| اړین | ضروري | اړیکې | رابطه |
| مخنیوی | جلوګیری | مینځل شوی | شسته شده |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د میوو او سبو د ګټو په هکله څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# ښه زده کوونکی

**موخه**: د متن سم لوستل، ليکل، د ښو زده کوونکو په صفاتو پوهېدل او په دوی کې ددې روحيې روزل چې ښه زده کوونکي شي.





**پوښتنه**:

ستاسو په فکر ښه زده کوونکی کوم صفتونه لري؟

| | |
|---|---|
| ښوونځي کې شاګـــــــــردان يو | د هېواد ښکلي ګـــلان يـــو |
| ښوونځـــي ته ځـو پـه مينـــــــــه | پـه درسو کې زيار کښان يـــو |
| مدام پام پـه کتـــابو کـــــــــړو | د کتـاب طرفـداران يـــو |
| رښتيـا وايـــــــو رښتيـــا اورو | پـه رښتيـــا پـسې روان يـو |
| مهـــال وېش سره سم دروموــــــــو | همېشه وخـــت شناسان يـــو |
| هېڅ وخت چا سره جنګ نه کـــړو | يو د بل مـــــددګــاران يــو |

د (نژند) يـو مـوړ ملګـــــري
مينه ناک د خپل عــــرفان يو

(محمد عثمان نژند)



## فعالیتونه:

- زده کوونکي دې په وار سره نظم ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.
دغه کلمې(هېواد، مینه، زیارکښان، شوق) دې په جملو کې وکاروي او په خپلو کتابچو کې دې ولیکي.
- یو یو زده کوونکی دې د تختې مخې ته راشي په دې اړه دې نورو ته ووایي چې: څنګه کولای شو موږ هم ښه زده کوونکي شو.
- څو تنه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي د ښه زده کوونکي په اړه دې خبرې وکړي.
- زده کوونکي دې په لاندنیو کلمو کې د جمعي کلمې په نښه کړي: زده کوونکی (تختې، هیواد، عرفان، ملګري، نژند)
- دوه دوه زده کوونکي دې لاندې مرکه ترسره کړي:

صدیق: امین جانه! السلام علیکم
امین: وعلیکم السلام،صدیق جانه څنګه یې؟
صدیق: مننه، ښه یم وروره. ته ښه یې؟
امین: زه هم ښه یم ډېره مننه، جوړ اوسې.
صدیق: امین جانه! یوه پوښتنه په ذهن کې لرم لومړی به یې له تا څخه وکړم.
امین: ویې وایه!
صدیق: ښه زده کوونکی چا ته ویل کیږي؟
امین: زما پلار وایي: ښه زده کوونکی هغه څوک دی چې تل په درسونو کې کوښښ وکړي، خپل وخت ضایع نه کړي، د ښوونکو او مشرانو احترام وکړي، له نورو سره هم ښه چلند ولري.
صدیق: نو که هرڅوک دا کارونه وکړي هغه ته ښه زده کوونکی ویلای شو؟
امین: هو، ولې نه. د ښه زده کوونکي نور صفتونه به له ښوونکي څخه وپوښتو.
صدیق: ډېره مننه، سلامت اوسې.

| لغت | معنا | لغت | معنا |
|---|---|---|---|
| مهال وېش | تقسیم اوقات | مددګار | کمک کننده |
| عرفان | علم و معرفت | زیارکښان | زحمت کشان |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د خپلې پوهې له مخې د ښو زده کوونکو ځینې صفتونه په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# غوره ويناوې

**موخه**: د متن سم لوستل، ليکل، د پندونه په معنا پوهېدل او په ژوند کې پرې عمل کول.

نبه خلک هغه دي چې نورو ته خير او ګټه ورسوي.



**پوښتنه**:

تاسو کله له چا څخه پندونه اورېدلي دي؟

- نبه خلک هغه دي چې نورو ته خير او ګټه ورسوي.
- څوک چې خپله ژبه له بدو خبرو څخه وساتي، په ژوند کې نه پښېمانه کيږي.
- څوک چې بل ته چاته کوهی کيني، خپله به پکې ولوېږي.
- د بې فکره او بې تدبيره کار نتيجه خرابه ده.
- له ښو خلکو سره دوستي کوئ او د بدو خلکو له دوستۍ څخه ځان وساتئ.
- هغه څه مو چې نه وي زده په پوښتنه يې مه شرمېږئ، که څوک په پوښتنه شرمېږي ناپوه پاتې کيږي.
- که غواړئ چې دوستان مو ډېر وي د ښو اخلاقو خاوندان شئ.



## فعالیتونه:

- زده کوونکي دې په خپلو ګروپونو کې لوستل شوې غوره وېناوې ولولي اود مطلب په هکله دې له یو بل سره مشوره وکړي. بیا دې د هر ګروپ یو تن د ټولګي مخې ته راشي او د ورمونو د مطلب په اړه دې خپله لیکنه نورو ته ولولي.

- زه کوونکي دې د تختې مخې ته راشي او که کومه داسې وینا یې زده وي هغه دې نورو ته ووایي.

- زده کوونکي دې په وار سره د تختې په مخ کې په دې مطلب خبرې وکړي چې: ( موږ ښنګه کولای شو خپله ژبه له بدو خبرو ښخه وساتو)

- زده کوونکي دې د لاندنیو کلمو متضادې کلمې ولیکي.

(ګټه، ژوند، دوستي، ناپوه، دوستان، خراب)

| لغت | معنا | لغت | معنا |
|---|---|---|---|
| پندونه | نصایح | بې تدبیره | بې فکر |
| ژغورل | نجات دادن | کوهی | چاه |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکی دې ددغو وېناوو په شان که ځینې نورې وېناوې اوریدلې وي په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# ترافیکي لار ښوونې

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل، د ترافیکي نښو او اشارو پېژندل او تل ورته پاملرنه کول.







**پوښتنه**:

په پورتنیو انځورونو کې څه وینئ؟ خبرې پرې کولای شئ!

ستاسو په فکر له عمومي سړک څخه د تېریدو په وخت باید څه وکړئ؟

**په لویو او وړو ښارونو، بازارونو او نورو ځایونو کې موټرونه، نقلیه وسایط او خلک تګ او راتګ کوي. په کار ده چې هېڅ وخت د سړکونو په منځ کې تګ او راتګ ونه کړو، ځکه چې دا کار خطر لري. همدا رنګه کله چې د سړک له یوې خوا څخه بلې خوا ته تېرېږو، لومړی باید د سړک دواړو خواووته وګورو چې موټر او نور وسایط نه وي. بیا په احتیاط او پوره پاملرنې له سړک څخه تېر شو. همدا راز ماشومان دې د سړکونو څخه د تېرېدلو په وخت کې له ترافیک یا نورو کسانو څخه مرسته وغواړي.**

**د سړکونو په غاړو کې ځینې نښې او اشارې اېښودل شوي چې د لارویو او موټر چلوونکو لپاره ګټورې لارښوونې دي. دا نښې د ترافیکي اشارو په نامه یادېږي.**



**فعالیتونه**:

- څو تنه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي لوست دې په لوړ آواز ولولي.
- زده کوونکي دې په خپلو ګروپونو کې د ترافیکي اشارو د اړتیا او ګټو په هکله له یو بل سره خبرې وکړي او بیا دې له هر ګروپ څخه یو تن د ټولګي مخې ته راشي او د ترافیکي اشارو په هکله دې

نورو ته معلومات ورکړي.

- زده کوونکي دې ترافيکي اشارې په خپلو کتابچو کې رسم کړي، نومونه دې ورته وليکي.
- زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي او لاندې کلمې دې په جملوکې وکاروي.
(ښېې، ښارونه، موټرونه، ترافيک، بازارونه، ماشومان)
- زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي او د څو رنګونو نومونه دې پرتختې وليکي.
- دوه دوه تنه زده کوونکي دې لاندې خبرې اترې ترسره کړي!

خالد: ميرويس جانه! السلام عليکم

ميرويس: خالد جانه! وعليکم السلام

خالد: ستړې مه شې ورور، ښه يې.

ميرويس: په خير اوسې خالدجانه، ډېره مننه.

خالد: سهار دې ښوونځي ته نژدې ترافيکي پېښه وليده؟

ميرويس: هو، زه هم له همدې لارې راځم. ډېر خپه شوم.

خالد: ځينو هلکانو په سړک کې لوبې کولې او بې پامه د موټر مخې ته ور برابر شول.

ميرويس: داسې لوبې ډېرې خطرناکې وي. هيڅکله په سړک کې بايد لوبې ونه کړو.

خالد: موږ بايد خپلو ورو خويندو او ورونو ته ووايو:

هيڅکله په لاروکې لوبې او بې پروايي ونه کړو. ځکه خطر لري.


له سړک څخه د تېرېدو اشاره


دپام کولو اشاره



د موټرو د تم ځای اشاره


د بسونو د تم ځای



د موټورو د نه تم ځای

| لغت | معنا | لغت | معنا |
|---|---|---|---|
| اشاره | علامه | انځور | تصوير |
| تګ را تګ | رفت و آمد | پاملرنه | توجه |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې څو کرښې په دې اړه په خپلو کتابچو کې وليکي چې: موږ له سړک څخه د کومې اشارې په وخت کې په خوندي توګه تيريدلای شو.

# ټوکه

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل، د ټوکې په مطلب او مفهوم پوهېدل او د مناسبو ټوکو د ویلو په وخت او ځای وپوهېږي.





**پوښتنه**:

تاسو له ټوکو سره مینه لرئ او کومه ټوکه مو په یاد ده؟

**یوه مرغۍ په یوې ډبرې ناسته وه.**

**ناڅاپه یې سترګې پټې شوې. یوې ګیدړې پرې ورټوپ کړ او مرغۍ یې ونیوه. مرغۍ پر ګیدړې غږ وکړ: «زه خو دې ښــــکار کړم، اوس د خدایﷻ شکر پرځای کړه.»**

**ناپوهې ګیدړې خوله وازه کړه چې د خدایﷻ شکر وباسي. مرغۍ یې لـه خـولې څخـه والوتـه. لرې په ښاخ کښېناسته. وې ویل:«ورکه دې هغه خوله شي چې نعمت یې نه وي خوړلی او شکر باسي.»**

**ګیدړې ورته وویل: «ورکې دې هغه سترګې شي چې د خوب وخت نه وي او پټې وي!»**



## فعالیتونه:

- زده کوونکي دې دوه دوه تنه په خپلو منځو کې متن ولولي.
- زده کوونکي دې په متن کې یا له خپل فکر څخه متضادې کلمې پیدا او پر تختې دې ولیکي، لکه:(یټ او ښکاره)
- زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي او د ټوکې په مطلب دې خبرې وکړي.
- زده کوونکي دې په خپلو ډلو کې په دې اړه مشوره وکړي چې: (هره ټوکه ولې ځانته وخت او مناسب ځای لري) بیا دې یو تن خپله لیکل شوې پاڼه نورو ته ولولي.
- زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي او یوه ټوکه یې که زده وي ووایي.
- دوه دوه تنه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي او یو بل ته له متن څخه یوه یوه جمله املا ووایي.
- دوه دوه زده کوونکي دې لاندې خبرې اترې ترسره کړي:

فاروق: نوید جانه! السلام علیکم ورحمته الله

نوید: وعلیکم السلام ورحمته الله ته څنګه یې؟

فاروق: الله جل جلاله دې سلامتي نصیب کړه، ډیره مننه نوید جانه.

نوید: په لیدو دې خوشحاله شوم.

فاروق: نویدجانه! په لوست کې راوړل شوې ټوکه دې خوښه شوه؟

نوید: هو زما ټوکې خوښیږي.

فاروق: ښوونکي د ټوکو په اړه ډېره ښه خبره وکړه چې:

په هر وخت او هر ځای کې ټوکې کول مناسب کار نه دی.

ټوکې باید د ادب په چوکاټ کې وي.

نوید: زما پلار هم ماته وایي:

بې وخته او بې ځایه ټوکې مه کوه، ځکه شخصیت ته زیان رسوي.

فاروق: رښتیا چې همداسې ده، له تا څخه ډیره مننه.

| لغت | معنا | لغت | معنا |
|---|---|---|---|
| ټوکه | فکاهي | ټوب | خیز |
| نا ځاپه | ناګهان | ښکار | شکار |
| ګیدړه | روباه | ډبره | سنګ |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې له خپل فکر څخه یوه ښکلې او مناسبه ټوکه په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# عادل پاچا

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او زده کوونکي د عدل او عدالت په مفهوم وپوهېږي.



**پوښتنه**:

څه فکر کوئ چې عدل یا عدالت څه ډول عمل دی؟

**وايي چې د روم پاچا نوشيروان پاچا ته استازی لیږلی و، کله چې هغه دربار ته ورسېده ګوري چې یوه لویه ماڼۍ ده، پاچا پکې په تخت ناست دی او نور امیران او وزیران په څوکیو ناست دي. استازي چې شاوخوا وکتل، پدغې ماڼۍ کې یو ځای ورته کوږ ښکاره شو. له یوه سړي څخه یې پوښتنه وکړه چې دا ځای ولې کوږ دی؟**
**هغه ورته وویل چې دا د یوې بوډۍ کور و. په هغه وخت کې چې پاچا دا ماڼۍ جوړوله، نو هغې بوډۍ ته یې وویل: چې دا کور په ما خرڅ کړه، مګر د هغې رضا او خوښه نه وه پاچا په زور سره دا کار ونه کړ، نو ځکه دا ځای پدې ماڼۍ کې کوږ پاتې شوی دی. استازي وویل: «ریښتیا خبره داده چې دا کوږ والی ډېر ښه دی، تر هغه سموالي چې په ظلم سره شوی وای.»**



**فعالیتونه**:

- زده کوونکي دې په وارسره د تختې مخې ته راشي، جملې دې ولولي او معنا دې کړي.
- دوه دوه تنه زده کوونکي دې د متن جملې یو بل ته د املا په توګه ووايي او بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

- زده کوونکي دې په خپلو ډلو کې ددې کیسې د مفهوم په اړه خبرې وکړي.
بیا دې له هرې ډلې څخه یو تن د تختې مخې ته راشي او د خپلې ډلې لیکل شوی نظر دې نورو ته ووایي.
- څو تنه زده کوونکي دې د لاندینو کلمو د جمع شکل پرتختې ولیکي او بیا دې په جملو کې وکاروي.
(وزیر – امیر – پاچا – سړی – بوډۍ – استازی)
- دوه دوه تنه زده کوونکي دې لاندې خبرې اترې ترسره کړي:
نصیب: عزیز جانه! السلام علیکم
عزیز: نصیب جانه! وعلیکم السلام
نصیب: څنګه یې وروره، صحت دې ښه دی؟
عزیز: شکر ښه یم، جوړ اوسې.
نصیب: عزیز جانه! ته وروسته له ښوونځي څخه څه کار کوې؟
عزیز: نصیب جانه! زه چې کله له ښوونځي څخه راشم لوستل شوي درسونه په کور کې تکرار وم.
بیا مې له ورور او پلار سره په کارونو کې مرسته کوم.
نصیب: ډیر ښه – زه هم د کور په کارونو کې له خپل پلار سره مرسته کوم.
د کور په کارونو کې مرسته کول ډېر ښه کار دی.
نصیب: موږ باید د کور په کارونو کې برخه واخلو او کورنی خوشحاله وساتو!
عزیز: هو! ستا خبره باالکل سمه او په ځای ده.

| لغت | معنا | لغت | معنا |
|---|---|---|---|
| استازی | قاصد | مانۍ | قصر |
| کوږ | کج | بوډۍ | پیره زن |
| سموالی | راست بودن | کوږوالی | کجی |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې فکر وکړي او څو کرښې دې په دې اړه په خپلو کتابچو کې ولیکي:
چې موږ له دې کیسې څخه څه زده کړل؟

# متلونه

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د متلونو په مطلب او ارزښت پوهېدل او په خپلو ویناوو کې د هغو په ځای کارونه.



**پوښتنه**:

تاسوله متلونو سره آشنایي لرئ او کوم متل مو په یاد دی؟

**متلونه د پښتو ژبې په ولسي ادب کې یوه غوره او په زړه پورې برخه ده. متلونه هغه لنډې وېناوې دي چې ډېر لوی او پراخ مطلب په کې ځای شوی وي. د متلونو ویونکي معلوم نه دي. په هره زمانه کې ویل شوي او د هغو په وسیلې د ټولنې دودونه او د خلکو افکار له یوه نسل څخه بل نسل ته لیږدول کیږي. د متلونو اغیزه په ژبه کې دومره زیاته ده چې په خبرو اترو کې د یوه ټینګ استدلال په توګه راوړل کیږي. دا برخه په پښتو ادب کې ډېره شتمنه او بډایه برخه ده چې شمېر یې زرګونو ته رسیږي.**

**ځینې متلونه به د مثال په توګه وګورو:**

- **چې څه کرې هغه به رېبې.**
- **چېرې چې اوسې، په خوی به د هغو سې.**
- **وخت لکه سره زر دی.**
- **په یوه ګل نه پسرلی کیږي.**
- **مار ته په لستوڼي کې ځای مه ورکوه.**
- **بد خوی چې زورور شي، نو عقل مرور شي.**



## فعالیتونه:

زده کوونکي دې په وارسره متن په لوړ آواز د ټولګي په مخکې ولولي.
- زده کوونکي دې د يو بل په مرسته لوستل شوی متن د املا په توګه وليکي.
- زده کوونکي دې په ګروپي توګه د متلونو په هکله مشوره وکړي او بيا دې د هر ګروپ يو غړی د ټولګي مخې ته راشي او يو متل دې په شفاهي توګه نورو ته ووايي او په مطلب دې لنډې خبرې وکړي.
- يو يو زده کوونکی دې د تختې مخې ته راشي او په دې اړه دې خبرې وکړي چې:
موږ ولې متلونه د يوې خبرې د استدلال په توګه کاروو؟
- زده کوونکي دې د دغه متل په اړه خبرې وکړي.
چېرې چې اوسې په خوی به د هغو سې.
- دوه دوه زده کوونکي دې لاندې خبرې اترې ترسره کړي:
ملاله: شبنم جانې السلام عليکم
شبنم: ملاله جانې وعليکم السلام ښه راغلې.
ملاله: شبنم جانې کورنۍ دې ښه ده؟
شبنم: شکر دی الحمدالله.
ملاله: شبنم جانې د نن لوست دې خوښ شو؟
شبنم: هو، متلونه مې ډېر اوريدلي وو، خو په معنا يې نه پوهيدم.
ملاله: متلونه د پخوانيو خلکو پخې خبرې دي چې ډېره لويه معنا لري.
شبنم: موږ بايد په متلونو ځان پوه کړو.
د ويلو په ځای او مطلب يې هم بايد پوه شو.
ملاله: شبنم جانې! ستا خبره سمه ده، همداسې به وکړو.

| لغت | معنا | لغت | معنا |
| --- | --- | --- | --- |
| متل | ضرب المثل | استدلال | دليل آوردن |
| مل | همراه، دوست | شتمن | ثروتمند |
| لستوڼی | آستين | | |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې داسې متلونه وليکي چې په کتاب کې نه وي راغلي.

# د غاښـونو ساتنه

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل، د غاښونو په ارزښت پوهېدل او د زده کوونکو داسې روزنه چې د خپلو غاښونو ساتلو او مېنځلو ته پاملرنه وکړي.





**پوښتنه**:

ستاسو په فکر د خپلو غاښونو د ساتنې لپاره باید څه وکړو؟

**د ملالۍ غاښ خوږېده. پلار يې د غاښونو کلينيک ته راوسته. ډاکټرې له ملالۍ څخه پوښتنه وکړه: «ستا په غاښونو څه شوي دي؟» ملالۍ وويل: «پرون مې بادام پرې ماتول چې پاسنی غاښ مې په درد شو.» ډاکټرې راته وويل: «غاښونه د خوړو د ژوولو او د مخ د ښکلا لپاره ډېر ارزښت لري. که غاښونه مو روغ نه وي خواړه نشو ژوولای.**

**موږ باید دخپلو غاښونو ښه ساتنه وکړو. هره ورځ له خوړو څخه وروسته خپل غاښونه په برس یا مسواک پاک ومينځو. هېڅکله باید په خپلو غاښونو کلک شيان مات نه کړو چې غاښونو ته مو زيان رسوي.»**



## فعالیتونه:

- زده کوونکي دې په خپلو ګروپونو کې متن ولولي او د غاښونو دارزښت په اړه دې له یو بل سره مشوره وکړې او بیا دې له هر ګروپ څخه یو تن د ټولګي مخې ته راشي او د غاښونو د ارزښت په اړه دې معلومات وړاندې کړي.
- لاندې کلمې دې په خپلو کتابچو کې ولیکي او بیا دې په لنډو جملو کې وکاروي:
( غاښونه- کلک شیان – مینځم – ارزښت - ساتنه - خواږه )
- زده کوونکي دې له متن څخه څو متضادې کلمې پیدا او د تختې پرمخ دې ولیکي، لکه: زیان او ګټه...
- زده کوونکي دې په دې اړه خبرې وکړې چې:
موږ ولې باید هره ورځ خپل غاښونه ومینځو؟
- دوه دوه زده کوونکي دې دا لاندې خبرې اترې ترسره کړې:
اسد: عمرجانه! السلام علیکم
عمر: وعلیکم السلام اسدجانه ته ښه یې؟
اسد: ډیره مننه.
عمر: یوازې غاښ مې خوږیږي.
اسد: عمرجانه! ولې دې غاښ خوږیږي؟
کوم کلک شی خو به دې پرې مات کړی نه وي؟
عمر: همداسې ده. زه کله کله بادام په غاښو ماتوم.
اسد: تا باید دا کار نه وای کړی. په غاښونو باندې د کلکو شیانو ماتول غاښونو ته زیان رسوي. ته باید د غاښونو ډاکټر ته ولاړ شې او د خپلو غاښونو غم وخورې.
عمر: وروسته تر ښوونځي له ورور سره مې ډاکټر ته ځم.
اسد: هرومرو ډاکټر ته ولاړ شه او په لارښوونو یې عمل وکړه!
عمر: حتماً یې په لارښوونو عمل کوم، ستا له نېکو مشورو او لارښوونو څخه مننه.

| لغت | معنا | لغت | معنا |
|---|---|---|---|
| خوږېدل | درد کردن | ماتول | شکستاندن |
| ژوول | جویدن | ساتنه | حفاظت |
| زیان | نقص | | |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په دې اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکي:
موږ ولې په خپلو غاښونو کلک شیان نه ماتوو؟

# مرکبې کلمې

**موخه**: د متن سم لوستل، ليکل، د مرکبو کلمو پېژندل او د هغو سمه کارونه.



**پوښتنه**:

ستاسو په فکر مرکبې کلمې څه ډول کلمې دي څوک يې کوم مثال ويلای شي؟

مرکبې کلمې: هغو کلمو ته وايي چې له دوو يا زياتو کلمو څخه جوړې شوې وي. لکه: میرویس میدان، مزار شريف، ورځپاڼه او نور...

په لاندې جملو کې مرکبې کلمې وګورئ!

۱. احمد شاه خپلې مور ته کميس واخيست.

۲. سرتور ښکلی فيل مرغ لري.

۳. د سپين بولدک ولسوالي د کندهار په ولايت کې ده.

۴. مزارشريف لوی ښار دی.

۵. اورمړي لرغونې ژبه ده.

## ټوکه

نن سليم او احمد رشاد ښوونځي ته ناوخته راغلل. ښوونکي ترې پوښتنه وکړه:
سليمه، «ولې ناوخته راغلې؟»

- سليم: «ما نه په لاره کې روپۍ ورکه شوې وه، هغې پسې ګرځېدم.»
- ښوونکی: «احمد رشاده، تا ولې ناوخته کړه؟»
- احمد رشاد: «صاحب، ما د ده په روپۍ پښه ايښې وه.»



## فعالیتونه:

- زده کوونکي دې په وارسره د ټولګي مخې ته راشي، متن دې په مناسب آواز ولولي.
- زده کوونکي دې له يو بل سره د مرکبو کلمو په معنا او تعريف خبرې وکړي او د هغو لنډ تعريف دې تمرين کړي.
- لاندې کلمو څخه مرکبې کلمې په نښه او په خپلو کتابچو کې يې وليکئ:
(سپين غر، ګل غوټۍ، بادام ګل، سره بادنجان، توربادنجان، قلم، کتاب.)
- څو تنه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي، که کومه ټوکه يې زده وي نوروته دې ووايي.
- زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي او له خپل فکر څخه د څو مرکبې کلمې وليکي.

| لغت | معنا | لغت | معنا |
|---|---|---|---|
| خپلواک | مستقل | ورځپاڼه | روزنامه |
| کميس | پيراهن | پښه | پای |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې له خپل فکر څخه څو مرکبې کلمې په خپلو کتابچو کې وليکي او په جملو کې دې وکاروي.

# له هېواد سره مينه

**موخه**: د متن سم لوستل، سم ليکل، له هېواد سره د مينې او د هغه د خدمت کولو د ذهنيت وده او پياوړتيا.





**پوښتنه**:

ستاسو په فکر موږ ولې له خپل هېواد سره مينه لرو؟

**هېواد زموږ د ټولو افغانانو ګډ کور دی، موږ ټول په دې کور کې ژوند کوو. د هيواد له مينې ډکه غېږ کې رالوييږو. او له پاکې او تازه هوا څخه يې ګټه اخلو او په نعمتونو يې زموږ بدن وده کوي.**

**هيواد موږ ته د مور په شان دی. له دې امله پر موږ ډېر حقونه لري. د هيواد د سرحدونو ساتل، ودانول او پرمختګ زموږ ملي دنده ده. هيواد په علم او پوهې ودانيږي. زده کړه د علم او پوهې د لاسته راوړلو يوازينۍ لار ده. نن چې موږ زده کوونکي يو، بايد د علم او پوهې په فکر کې شو، ډېر لوست ووايو او ښه زده کړه وکړو، ترڅو وکولای شو د خپلو بيوزلو خلکو د خدمت جوګه وګرځو او خپل وېجاړ وطن له بدبختيو څخه خلاص او ودان کړو.**



## فعالیتونه:

- زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي او متن دې ولولي.
- زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي او د متن جملې دې یو بل ته املا ووایي.
- څو تنه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي، د هېواد د مینې په هکله دې خبرې وکړي.
- دوه تنه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي یو بل دې ټولګیوالو ته معرفي او یوه مرکه دې سرته ورسوي.
- دوه دوه تنه زده کوونکي دې لاندې خبرې اترې ترسره کړي:

فریده: خدیجې! السلام علیکم ورحمت الله

خدیجه: فریدې جانې وعلیکم السلام سترې مه شې

فریده: ته سترې مه شې خدیجې خورې جوړه یې؟

خدیجه: شکر ته جوړه یې؟

فریده: خدیجه جانې! د وطن مقاله چې ښوونکې کورنۍ دنده راکړې وه، هغه دې لیکلې ده؟

خدیجه: هو فریده جانې! زه له وطن سره ډېره مینه لرم.

پرما خپل وطن ډېر ګران دی.

فریده: ډیر ښه – پر هر چا خپل وطن ګران وي.

پر ما هم خپل وطن ډیر ګران دی.

خدیجه: زما پلار وایي تاسې په درسونو کې زیاز وباسئ چې ښه انسانان درڅخه جوړ شي او خپل وطن ته د خدمت جوګه شئ!

فریده: ستا پلار جان ډېره ښه خبره کړې ده وطن د مور حیثیت لري.

لومړی باید زده کړه وکړو. چې د پوهې خاوندان شو، بیا خپل وطن جوړولای شو.

| لغت | معنا | لغت | معنا |
|---|---|---|---|
| ویجاړ | ویران | رښتیني | راستین |
| هېواد | وطن | ګډ | مشترك |
| مینه | محبت | وړ | شایسته - مناسب |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په دې اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکي چې:

((موږ د خپل هېواد د ساتنې او آبادولو په اړه څه مسوولیتونه لرو؟))

# جمله

**موخه**: د متن سم لوستل، ليکل، د جملې په معنا او مفهوم پوهېدل او د هغو سمو ليکنو ته پاملرنه.



**پوښتنه**:

ستاسو په فکر جمله څه ته وايي؟

**جمله: د څو کلمو له یو ځای کېدو څخه چې پوره معنا او مفهوم واخيستل شي جمله بلل کيږي.**

**جمله له دوو برخو چې مبتدا او خبر نوميږي منځته راځي.**

**د جملې د مبتدا په برخه کې فاعل او د خبر په برخې کې مفعول، فعل او د هغو اړوند توکي راځي.**

**لکه: احمد راغی احمد مبتدا او راغی خبر دی**

**حميدې خپل درسونه ولوستل. په دې جملې کې (حميدې) مبتدا ولوستل د خبر برخه ده.**

**یوازې د یوې کلمې په ويلو مطلب نه بيانيږي لکه: ورځ، قلم، لوست او نور مورږ خپل مطلب په جملو کې بيانوو. د کتاب ټول لوستونه هم په جملو ليکل شوي دي. لکه: دوه تنه زده کوونکي درس لولي.**



## فعالیتونه:

- زده کوونکي دې متن په وار سره ولولي، په مطلب او مفهوم دې خبرې وکړي.
- دوه دوه تنه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي څو جملې دې یو بل ته املا ووایي.
- زده کوونکي دې د متن لغتونه تر معنا کولو وروسته په جملو کې وکاروي او بیا دې په کتابچو کې ولیکي.
- زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي له خپل فکر څخه دې څو جملې ووایي، د مبتدا او خبر برخه دې پکې وښيي.

زده کوونکي دې په وارسره د تختې مخې ته راشي درې، څلور او پنځه کلمې لرونکې جملې دې پرتختې ولیکي.

| لغت | معنا | لغت | معنا |
|---|---|---|---|
| ګنګل | شمپرل | فعل | کار یا عمل |
| مېږی | مورچه | فاعل | اجرا کننده کار |
| وېرېدل | ترسیدن | مفعول | کسی یا چیزی که فعل بالای آن اجرا شده باشد. |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې له تېرو درسونو څخه په خپله خوښه څو جملې وټاکي، مبتدا او خبر دې پکې وښيي او په کتابچو کې دې ولیکي.

# دوه ويشتم لوست

## تيلفون

**موخه**: د متن سم لوستل، ليکل، د تيلفون په ارزښت، ګټو او سمې کارونې پوهيدل.





**پوښتنه**:

ستاسو په فکر بايد له تيلفون څخه څه ډول کار واخيستلای شي؟

**تيلفون يوه امريکايي پوه چې (ګراهام بل) نوميده، اختراع کړ. خو د ګراهام بل تيلفون بشپړ نه و. تر ده وروسته نورو پوهانو هم په دې برخه کې ډېر زيار ايستلی دی. تر څو په دې وتوانېدل چې تر لرې واټن پورې يې غږ ولېږدوي. اوس مهال په تيلفون کې ډېر زيات بدلونونه او پرمختګونه رامنځته شوي. خلک کولای شي په ډېرې آسانۍ سره د نړۍ له يوې برخې څخه په بله برخه کې له خپلو دوستانو سره د خبرو له لارې اړيکې ټينګې کړي.**



**فعاليتونه**:

- زده کوونکي دې په خپلو ګروپونو کې د تيلفون متن ولولي او بيا دې له هر ګروپ څخه يو تن د ټولګي مخې ته راشي او د تيلفون په اړه دې خپل معلومات نورو ته وړاندې کړي.

- د لاندې کلمو سمه معناله چوکاټ څخه پيدا او د کلمو تر څنګه دې په خپلو کتابچو کې وليکي.

| | |
|---|---|
| ۱. اختراع: ___________ | فاصله |
| ۲. بشپړ: ___________ | کوشش |
| ۳. هڅه: ___________ | پوره |
| ٤. واټن: ___________ | د نوي شي جوړول |

- زده کوونکي دې د متن لغتونه معنا او په جملو کې وکاروي.
- زده کوونکي دې په وارسره د تختې مخې ته راشي او د تیلفون د کارونې په اړه دې خبرې وکړي.
- زده کوونکي دې په وارسره د تختې مخې ته راشي او له متن څخه د څلور او پنځو څپو لرونکې کلمې پیدا بیا دې پرتختې ولیکي.
- دوه دوه تنه زده کوونکي دې دا لاندې خبرې اترې سرته ورسوي.

سائل: راشده! السلام علیکم

راشد: سائل جانه! وعلیکم السلام

سائل: څنگه یې وروره، ښه یې؟

راشد: ډېره مننه، تاسې هم ښه یاست؟

سائل: راشد جانه! تاسې په کور کې ټیلفون لرئ؟

راشد: هو – مو‌ږ په کور کې ټیلفون لرو.

سائل: ستا ټیلفون خوښیږي؟

راشد: هو – زما ټیلفون خوښیږي.

خو له ټیلفون څخه کار نه اخلم، ځکه پلار مې وايي:

کله چې ته د ټیلفون په سمې کارونې وپوهیږې، بیا تاته ټیلفون اخلم.

سائل: راشد جانه! ستا پلار ښه خبره کوي، زما پلار هم همداسې وايي:

که د ټیلفون په سمې کارونې ونه پوهیږو، نو له هغه څخه سمه گټه هم اخیستلای نه شو.

راشد: نو لازمه ده چې د پلار خبرې ومنو.

| لغت | معنا | لغت | معنا |
|---|---|---|---|
| بشپړ | پوره | پرمختگ | پیشرفت |
| استول | فرستاندن | بدلون | تغییر |
| گوښه | کنار | هڅه | تلاش وکوشش |
| لېږدول | انتقال دادن | واټن | فاصله |
| زیار | کوشش | | |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د تیلفون د مناسبې کارونې په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# نظم

**موخه**: د متن سم لوستل، ليکل او د نظم او نثر په معنا او مفهوم پوهيدل.





**پوښتنه**:

- آيا تاسو د نظم کلمه اورېدلې او په معنا يې پوهېږئ؟
- آيا تاسې نثر پېژنئ او له نظم سره څه توپير لري؟

**نظم په لغت کې د مرغلرو پيیلو ته وايي. په اصطلاح کې هغې وينا او ليکنې ته ويل کېږي چې د بيتونو په پای کې وزن او قافيه ولري. داسې نظمونه هم شته چې قافيه نه لري.**

**قافيه په نظمونو کې هغو هم آهنګيو ته ويل کېږي چې د بيتونو په پای کې راغلې وي.**

**لکه په دې بيتونو کې د (پندونه، لالونه او زړونه) د قافيې کلمې دي چې په يوه وزن او آهنګ سره راوړل شوي دي:**

| | |
|---|---|
| خپل استاد و ماته ووې څــو پندونــه | هــر يو پند يې مرغلرې دي لالونــه |
| وې يې هره بدي کړه هغه بد مه کړه | چې له لاسه دې آزار شي د چا زړونه |

**هغه وينا او ليکنې د نظم پرخلاف چې وزن او آهنګ ونه لري نثر بلل کېږي.**

**لکه: زموږ خبرې اترې يا د کتاب زياتره لوستونه چې په نثر ليکل شوي دي.**



## فعالیتونه:

- زده کوونکي دې لوست په لوړ او مناسب آواز ولولي.
- زده کوونکي دې د متن لغتونه معنا او په خپلو کتابچو کې دې ورته جملې جوړې کړي.
- زده کوونکي دې له خپل فکر یا له کتاب څخه ځینې بیتونه ووایي او په هغو کې دې د قافیې کلمې وښیي.
- زده کوونکي دې دوه دوه تنه د متن بیتونه یو بل ته املا ووایي.

زده کوونکي دې په وارسره د تختې مخې ته راشي او د نثر په برخه کې دې څو مثالونه د تختې پرمخ ولیکي.

| لغت | معنا | لغت | معنا |
|---|---|---|---|
| ارزښتناکه | قیمتي | ښکلا | زیبایی |
| مرغلرې | مروارید | پېیل | جیل کردن |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې یو ښکلی نظم په خپلو کتابچو کې ولیکي او قافیه دې پکې وښیي.

# لیک نښې

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د لیک نښو په معنا او کارولو پوهیدل او په لیکنو کې هغو ته پاملرنه.






**پوښتنه**:

له تاسو څخه څوک لیک نښې پیژني؟

**په لیکنو کې د یوه مطلب د ښه څرګندولو لپاره د لیک نښو کارول ډېره ضروري خبره ده. دغو ټکو ته پاملرنه په لیکنو کې داسې آسانتیاوې منځ ته راوړي چې لوستونکي او اورېدونکي په آسانۍ سره کولای شي د هغه په مطلب وپوهېږي.**

**د مثال په توګه د ځینو لیک نښو کارونه به په لاندې جملو کې وګورو:**

**ټکی(.) د یوې جملې په آخر کې راځي، لکه: احمد تږی دی.**

**سوالیه(؟) د یوې سوالیې جملې په پای کې اېښودل کیږي، لکه: چېرته ځې؟**

**ندائیه(!) د امریه، تعجب او هغو جملو په آخر کې راځي چې چا ته غږ پکې شوی وي، لکه:**

**ژر ژر ولیکه! سبحان الله! احمده راشه!**

**کامه(،): د کلمو او جملو په منځ کې چې یوه لنډه وقفه یا ځنډ را شي د کامې نښه(،) اېښودل کیږي. لکه: په نثرونو کې د ټکي، سوالیه، ندایې او کامې کارول ضروري خبره ده.**

**شارحه (:): دا نښه د یوې کلمې یا تر یوه مطلب وروسته د توضیح کولو لپاره راوړل کیږي. د مثال په ډول:**
**صفت: هغه کلمه ده چې د نوم حالت او ځرنګوالی ښيي، لکه: تورقلم، سپین کاغذ او نور.**



## فعالیتونه:

- زده کوونکي دې متن ولولي او د لیک نښو په هکله دې خبرې وکړي. ښوونکی دې د هغو نیمګړتیاوو ته پاملرنه وکړي.
- زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي او لغتونه دې معنا او بیا دې په جملو کې راوړي.
- زده کوونکي دې د متن لیک نښې په جملو کې وکاروي.
- زده کوونکي دې له خپل فکر څخه څو جملې ولیکي او په هغو کې دې لیک نښې وکاروي.
- زده کوونکي دې په وارسره د تختې مخې ته راشي له متن څخه دې د جمعې کلمې په نښه او بیا دې پرتختې ولیکي.

| لغت | معنا |
|---|---|
| ټکي | نقطه ها |
| اسانتیاوې | سهولتها |
| خبري جملې | جمله های که خبر را برساند. |
| امریه جملې | جمله های که در آن امر کرده شود. |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په خپله خوښه یوه مقاله په خپلو کتابچو کې ولیکي او لیک نښې دې په مناسبو ځایونو کې وکار وي.

# جرګه

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او په دې پوه شي چې د ولسونو شخړې او ستونزې د جرګو له لارې حل کیږي.





**پوښتنه**:

ستاسو په نظر جرګه څه ته وايي؟

**جرګه د افغانانو ملي دود دی. دوی ته دا پخوانی دود له نیکونوڅخه را پاتې دی. زموږ خلکو دغه منل شوی دود تر نن ورځې پورې ښه پاللی دی. که د خلکو یا ولسونو ترمنځ کومه ستونزه راپیدا شي، بیا جرګه راغواړي. خپلې ستونزې د جرګو له لارې هواروي. جرګې ځان ته قوانین لري. د قوم منلي، سپین ږیري او مشران په یوه ځانګړي ځای کې راغونډیږي او په اړوندو ستونزو باندې خبرې کوي، په پای کې د هغې پریکړه اعلانوي. زموږ خلک د جرګو پریکړو ته په درنه سترګه ګوري او له عملي کولو څخه یې هیڅوک سر نه غړوي.**



**فعالیتونه**:

- زده کوونکي دې متن ولولي او په خپلو ګروپونوکې دې د متن د مطلب په اړه له یو بل سره مشوره وکړي او بیا دې د هر ګروپ څخه یو تن د ټولګي مخې ته راشي او د متن د مطلب په اړه دې خبرې وکړي.
- زده کوونکي دې د مترادفو کلمو معنا له چوکاټ څخه پیدا او د کلمو تر څنګ دې په خپلو کتابچو

کې ولیکي:

مثال: جرگه: ________

ستونزې: ________

سپیڅلی: ________

ځانگړي: ________

پرېکړه: ________

| |
|---|
| فیصله |
| غونډه، ولسي مجلس |
| مشکلات |
| پاک |
| خاص - مشخص |

- زده کوونکي دې لغتونه تر معنا کولو وروسته په جملو کې وکاروي بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.
- زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي او له متن څخه دې د یوې، دوو او درو څپو لرونکې کلمې پیدا او بیا دې پرتختې ولیکي.
- دوه دوه زده کوونکي دې دا لاندې خبرې اترې د ټولگي په مخ کې ترسره کړي:

شېرشاه: قسیم جانه! السلام علیکم

قسیم: وروره! وعلیکم السلام

شېرشاه: څنگه یې، ښه یې؟

قسیم: ډېره مننه، شکر ښه یم.

شېرشاه: قسیم جانه! پرون چې ښوونکي وویل: په کور کې د جرگې په اړه له مشرانو سره خبرې وکړئ تا له چا سره خبرې وکړې؟

قسیم: هو ما له خپل پلار څخه د جرگې په اړه پوښتنې وکړې.

شېرشاه: پلار دې په دې اړه څه وویل؟

قسیم: پلار مې وویل:
جرگه د افغانانو ډېر پخوانی دود دی. جرگې ځانته اصول او قوانین لري.
کله چې د خلکو ترمنځ ستونزې پیدا شي، بیا سپین ږیري او مشران هغه ته د حل لار پیدا کوي، د جرگو فیصلې به حتماً ټول خلک مني.

شېرشاه: ډېر ښه، زه په دې خبره ښه نه پوهېدم، ښه معلومات دې راکړل.
له تا څخه ډېره مننه کوم.

| لغت | معنا | لغت | معنا |
|---|---|---|---|
| پخوانی | قدیمی | ستونزې | مشکلات |
| مشران | بزرگان | پرېکړه | فیصله |
| درناوی | احترام | اړوند | مربوط |
| ځانگړي | مشخص | منلي | قبول شده |
| دود | رسم و رواج | | |



## کورنی دنده:

زده کوونکي دې په دې اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکي چې:
(زموږ خلک ولې د جرگو د پرېکړو درناوی کوي؟)

# انټرنېټ

**موخه**: د متن سم لوستل، سم لیکل، د انټرنېټ پېژندنه او زده کوونکي په دې روحیه وروزل شي چې له انټرنېټ څخه په سمه توګه کار واخیستلای شي.







**پوښتنه**:

تاسو د انټرنېټ کلمه اوریدلې او په دې برخه کې معلومات لرئ؟

**د انټرنېټ کلمه له دوو کلمو څخه جوړه شوې چې انټر (له انټرنېشنل یعنې نړیوال څخه اخیستل شوې) او نېټ یې د جال په معنا ده. انټرنېټ هغه نړیواله شبکه ده چې څو یا زرګونه متصل کمپیوټرونه پکې شامل دي.**

**د انټرنېټ د کارولو لپاره له بېلابېلو وسایلو څخه کار اخیستل کیږي، لکه کېبلونه، کمپیوټرونه او نور...**

**هر کمپیوټر خپل معلومات له نورو کمپیوټرونو سره شریکوي. په دې اساس هغه خلک چې انټرنېټ کاروي د یوه او بل له معلوماتو څخه ګټه اخیستلای شي.**

**د انټرنېټ معلوماتي ساحه ډېره پراخه ده چې هلته د هرې موضوع په اړه معلومات شته انټرنېټ بېلابیلې پاڼې لري چې د انټرنیټي پاڼې (Website) په نوم یادیږي.**

**د معاصرې تکنالوژۍ ساینسي، علمي او ادبي معلومات، تربیتي فلمونه، کارتوني فلمونه، کمپیوټري لوبې یا (Game) او په زرګونو نور په زړه پورې شیان پکې موجود دي.**



## فعالیتونه:

- زده کوونکي دې متن ولولي او د انټرنېټ په هکله دې خبرې وکړي.
- زده کوونکي دې دوه دوه تنه یو بل ته د متن املا ووایي او په خپلو منځو کې دې اصلاح کړي.
- زده کوونکي دې د متن د لغتونو معنا له یو بل څخه وپوښتي او بیا دې په جملو کې راوړي.
- زده کوونکي دې په ډله ییزه توګه خپلو منځو کې د انټرنېټ په اړه مشوره وکړي بیا دې یو تن زده کوونکی د تختې مخې ته راشي او د خپلې ډلې نظر یې دې نورو ته وړاندې کړي.
- څو تنه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي له خپل فکر یا له متن څخه دې د (س او ش) لرونکې کلمې پیدا بیا دې پرتختې ولیکي.

| لغت | معنا | لغت | معنا |
|---|---|---|---|
| شبکه | جال | ټولګه | مجموعه |
| پاڼې | صفحه | ګیم | بازی های کمپیوټری |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په دې اړه یو لنډ مطلب په خپلو کتابچو کې ولیکي:
مونږ څنګه کولای شو له انټرنېټ څخه په سمه توګه کار واخلو؟

# د ناروغۍ رقعه

**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل او د ناروغۍ د رقعې لیکل.



**پوښتنه:**

ستاسو په فکر که څېرې څوك ناروغه شي ښوونځي ته څنګه خبر ورکوي؟

**سباوون د خوشحال زوی**
**د میرویس نیکه د ښوونځي**
**د شپږم ټولګي زده کوونکی**

**۱۳۹۵/۷/۲۱هـ ش**

**د میرویس نیکه د ښوونځي محترمې ادارې ته!**

**نن د ناروغۍ له امله ښوونځي ته د زده کړې لپاره درتلای نه شم. له دې کبله مې تاسې ته خبر درکړ.**

**په درناوي**
**سباوون**
**د زده کوونکي لاسلیک (                    )**



## فعالیتونه:

- زده کوونکي دې د ناروغۍ رقعه له یو بل سره ولولي او په خپلو کتابچو کې دې ولیکي.
- زده کوونکي دې یو بل ته د ناروغۍ د رقعې املا ووایي.
- د ناروغۍ رقعه دې ښه مشق او تمرین کړي او بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.
- زده کوونکي دې د ټولګي په وړاندې د خپلې خوښې د یوې موضوع په اړه خبرې وکړي.
- زده کوونکي دې په وارسره د تختې مخې ته راشي له خپل فکر یا له متن څخه دې متضادې او مترادفې کلمې پیدا او پرتختې دې ولیکي.

| لغت | معنا |
| --- | --- |
| سوبتیا | حاضري |
| ناروغي | مریضی |
| سوب | حاضر |
| هیله | امید |
| ناسوب | غیرحاضر |
| درناوی | احترام |



## کورنۍ دنده:

د ناروغۍ یوه رقعه دې په خپل نامه په خپلو کتابچو کې ولیکي!

# اته ویشتم لوست

## ترانه

**موخه**: د ترانې سم لوستل، لیکل او د ترانې په مفهوم پوهېدل.





**پوښتنه**:

تاسو له ترانو سره مینه لرئ او یوه ترانه له یاده ویلای شئ؟

**ای زما وطنه د لعلونو خــــزانې زمـــــــا ستا هره دره کې دي د تورې نښانې زما**

**ستا عزت چې نه وي زه به نـــــوم او عزت څه کړمــــه**

**ته چې خوار و زار یې زه به خوب او راحت څه کړمه**

**ستا سر چې وي ټیټ نو زه به شان او شوکت څه کړمه**

**مسته به دې خاوره کړم په وینه مستانې زما ای زما وطنه د لعلونو خزانې زما**

**یا به دې زه سیــال کړمـــــه وطنـــه د جهـــان**

**یا به ستا په ښسو کې تورې خاورې کړم خپل ځان**

**زه بـــه درېـ ورېـ شــــم خو تا به کـــــړم ودان**

**نر یمه پښتون یم تا ته یادې افسانـــې زمـــا ای زما وطنه د لعلونو خزانې زما**

عبدالغني خان د پښتو د نومیالي مشر، خان عبدالغفارخان زوی دی. دی په ۱۹۱٤ کال په پښتونخوا کې زېږدلی دی. په پنځلس کلنۍ کې یې مور له نړۍ سترګې پټې کړې. لومړنۍ زده کړې یې د اتمانزو په آزاد ښوونځي کې ترسره کړې او د نورو زده کړو لپاره انګلستان او امریکې ته لاړ. غني خان د پښتنو نومیالی شاعر و چې ځینې شعري مجموعې یې چاپ شوي دي لکه: د غني پلوشې، د پنجرې چغار، فانوس او نور. د شعرونو مجموعه یې د (غني کلیات) په نامه چاپ شوې دي.



**فعالیتونه**:

- زده کوونکي دې ترانه په ډله ییزه توګه ولولي.
- زده کوونکي دې د ترانې هموزنه کلمې په نښه او بیا دې خپلو کتابچو کې ولیکي.
- زده کوونکي دې متن یو بل ته املا ووایي.
- زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او د ترانې په هکله دې خبرې وکړي.
- لاندې کلمې دې په لنډو جملو کې وکارو وي او په خپلو کتابچو کې دې ولیکي.

(خاوره، ودان، تورې، شوکت، خزانې)

| لغت | معنا |
|---|---|
| نړۍ | جهان |
| نومیالی | نامدار |
| پلوشې | شعاع |
| وینه | خون |
| خاورې | خاك |
| دړې وړې | توته و پارچه |
| سیال | رقیب هم چشم |

# د پوهنې ترانه

پوهنه ده رڼا وطن ته مو ښکلا
کتاب او قلم زمونږ ره رهنما

پوهنه ده رڼا، وطن ته مو ښکلا
کتاب او قلم زمونږ ره رهنما

وطن زما يې ځان له تا نه شم قربان
ته وينه د افغان ته لوړ په ټول جهان

پوهنه ده رڼا، وطن ته مو ښکلا
کتاب او قلم زمونږ ره رهنما

اباد او سې اباد وطنه ته شې ښاد
مونږ سرښندو په تا او ساتو دې ازاد

پوهنه ده رڼا، وطن ته مو ښکلا
کتاب او قلم زمونږ ره رهنما

ته کور يې هم مې ګور ته پلار يې هم مې مور
ته زړه يې د اسيا زما د سترګو تور

پوهنه ده رڼا، وطن ته مو ښکلا
کتاب او قلم زمونږ ره رهنما

ته ننګ يې د اريا او تاج يې د يما
ځار يږمه له تا افغانستان زما

پوهنه ده رڼا، وطن ته مو ښکلا
کتاب او قلم زمونږ ره رهنما

محمد مُعين مرستيال